محسن

د قرآني زده کړو او پوهنې لړۍ

۹۴

# د «انشراح» سورت تفسير

په پښتو

ژباړه او څېړنه :

احمد حسين عنايت

د انشراح سورت تشريح
ژباړه او څېړنه:
احمد حسين عنايت

بسم الله الرحمن الرحيم
د لوراند او لورين الله په نامه
سورة الانشراح

# د انشراح سورت (۹۴)

د «انشراح» سورت مکي دی (۸ ) آيتونه يوه رکوع لري په تلاوت کې (۹۴) په نزول کې (۱۲) سورت دی د « ضحی » له سورت څخه وروسته نازل شوی دی

## له مخکيني سورت سره يې اړيکه:

ددې سورت ورته والي او د هغه د مضمونونو نژدې والی له مخکيني سورت (ضحی) سره دومره زيات دی چې ډېريو مفسرينو دا دوه سورتونه يو ګڼلی او د دواړو سورتونو قرائت يې (د دواړو تر منځ د بسم الله.... په حذف) د نمانځه په يو رکعت کې ګڼلی دی. سره ددې چې دا اړيکه ډېره نژدې او څرګنده ده خو د هغو د اړوندونو توضيح او ښلوالی کولی شي د سورت د مفهومونو په پوهه کې مرسته وکړي او د ګډون د مخينو پرتله او د هغوی په منځ کې په غوريالي او نازک ښلتون او توپير کې تدبر، ددغو دواړو سورتونو تر منځ توپير څرګندوي.
سر ښېره پر دې دوو سورتونو، نور دوه ګوني قريب المضمون سورتونه لکه اعراف او توبه هم شتون لري چې په قرآن کې دوه ښل سورتونه ګڼل شوي دي نو دا سورتونه هم په عين حال کې چې ډېر له يو بل سره نژدې،اړوند او ورته دي خو په بشپړه توګه خپلواک او ښل دي پر دې بنا منطقي نه برېښي هغوی يو وګڼو.
هر دواړه سورتونه پيغمبر اکرم ته خطاب دی او حضرت رسول ته د ربوبي لطفونو تذکر کوي. د ضحی په سورت کې (لکه څنګه چې وويل شول) ۹ ځله د «ک» ضمير کارول شوی دی او په دې سورت کې هم ۸ ځله د «ک» متصل ضمير او يو ځل د «انت» منفصل ضمير (جمعاً ۹ ځله) تکرار شوي دي، چې په دواړو سورتونو کې د پالونکي رب د ځانګړي عنايت او پېرزوينې يادونه ده. خو کوم توپير چې شته هغه د نعمتونو او لطفونو په ډول او بڼه کې دی. د ضحی په سورت کې رسول اکرم ته د ربوبي محسوسو او مشهودو پېرزوينو، لکه له يتيمۍ څخه پناه ورکول، له بې لارۍ څخه هدايت کول او له بېوزلۍ، فقر او نيازمندۍ څخه د بې نيازه کولو يادونه کوي،چې پخپله ده ته او نورو ته عيني جنبه لري.مګر د انشراح په سورت کې له نورو نعمتونو لکه:له انشراح صدر، وضع وزر او رفع ذکر خبره کوي چې تصور او تجسم يې د هغه چا لپاره چې له مادي عالمه يې معنا ته سير نه دی کړی مشکل او ستونزمن بلکه محال دی.
بل توپير هم لري، چې د لطفونو په ځانګړونه او عامونه کې د کتلو وړ دی. په ضحی سورت کې درې ځله د «ربک» کلمې له ذکر سره، د حضرت رسول په نسبت د پالونکي رب ځانګړی ربوبيت (له مضاف رب سره) څرګندوي او په انشراح سورت کې هم درې ځله د «نا» متکلم ضمير سره، د نورو ځواکونو او پټو

مرموزو قوتونو لاس لرل په داسې امداد او پېرزوينه کې ځرګندوي. (الم نشرح لک ..... وضعناعنک...... رفعنا لک) هغه ځانګړې پېرزوېنې او عنايتونه چې د ضحی په سورت کې ذکر شوي، حضرت رسول ته ځانګړي او مخصوص دي او دغه عمومي پېرزوېنې او عنايتونه چې د انشراح په سورت کې ترې يادونه کيږي پر نورو پيغمبرانو هم پېرزو شوي دي او هر مستعد او چمتو ته د هغه داستعداد او وړتيا په تناسب پېرزو کيږي.

او بالاخره د ضحی په سورت کې د يتيمۍ د دوران او د کوچنيتوب د بېوزلۍ او بيا د پناه موندلو او بې نيازۍ له يادونې سره، د پيغمبر پام د ستونزو او مصيبتونو په رفع کولو کې، ربوبي عنايتونو او پېرزوېنو ته اړوي او له يتيمانو سره په مهربانۍ او د سوالګرو د اړتيا په لېرې کولو او د نعمتونو په ذکر امر کوي د انشراح په سورت کې له تتو او خفي لطفونو له ذکر وروسته هغه ته « له سختۍ سره د آسانۍ له ملتيا» په ټينګار يادونه کوي [فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا] او له هر فراغت وروسته، د بل مسئوليت د سرته رسولو لپاره د بيا له سره چمتو کېدو، او د لوړ هدف او موخې په لور د يون او لېوالتيا له لامله [چې هماغه مضاف رب دی] فرمان ورکوي [فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ. وَإِلَى رَبِّكَ فَارْغَبْ]

## د سورت د مضمونونو محور:

لکه څنګه چې وويل شول په ضحی سورت کې د پيغمبر په نسبت له درېو تېرو نعمتونو او درېو حال او راتلونکو نعمتونو يادونه کوي چې آثار او نښې يې ټولو ته ښکاره او محسوسې دي او د انشراح په سورت کې له درېو غير مادي نعمتونو څخه چې تصور او تصديق يې اوچت فهم او درک ته اړ دی. دا درې نعمتونه چې د الله ډېر پراخ لطف او کرم دی عبارت دي له: د سينې پراخوالی [أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ.]، د پېټي سپکول [وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ. الَّذِي أَنْقَضَ ظَهْرَكَ] او د ذکر لوړول [وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ.]

يو غرګرځی په نظر کې ونيسئ چې څوکې ته د پورته کېدو لپاره په سترو او ځان ښودو هڅو کې دی، په هسکو لوړو کې د تنفس لپاره د سينې پراخوالي ته اړتيا لري چې د نفس، تنګي هغه د ستغو او نېغو لوړو څوکو له سر کولو څخه منع نه کړي، د پېټي سپکوالی يې په کار دی چې ملا يې ددغه روحي الوت په لوړتيا کې کړوپه نه شي او په پای کې، ددغو سختيو له تېرولو وروسته، له وياړه ډک عنوان غواړي چې ددغې څوکې د فاتح په توګه د هغه نوم ياد او ثبت شي.

پورتنۍ درې ګوني غوښتنې چې د هر هڅاند لپاره په هرې سختې او له ځواکه اوچتې تګلاره کې لازمې او رښتيني دي، په ځانګړې توګه د الهي پيغمبرانو لپاره چې ستونزمنترين مسئوليت او د تکليفونو دروند پېټی يې پر اوږو وو، رښتيني دي حضرت موسی چې د قبطي د قتل له لامله د مصر له هيواده تښتېدلی وو، کله چې د فرعون پر لور د تللو او د هغه د انذار او ارشاد او د بني اسرائيلو د ژغورنې رسالت ور په غاړه شو له هر څه وړاندې همدا درې غوښتنې مطرح کوي: رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي.وَيَسِّرْ لِي أَمْرِي. وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِنْ لِسَانِي. يَفْقَهُوا قَوْلِي.(۱) [طه ( ۲۵ ـ ۲۸)]

دا د صدر، انشراح هماغه صدري انشراح ده چې په «الم نشرح لک صدرک» کې ياده شوه. د امر آسانول (و يسرلی امری) هماغه له رسالت څخه مخکې د درانده پېټي د اغېزو لېرې کول دي چې ددې ماموريت سرته رسول يې ستونزمن کول. (و وضعنا عنک وزرک الذی...)

او بالاخره د ژبې د غوټې پرانېستل د پيغام د ابلاغ لپاره (واحلل عقده من لسانی يفقهوا قولی) د خلکو په منځ کې د تل پاتېدو، تېکاو او له هېرېدو څخه د مخنيوي په خاطر (ورفعنا لک ذکرک). آيا د پيغمبر د ذکر اوچتول دهغه په توسه د لېږدوونکو ارزښتونو له ژوندي پاتې کېدو يعنې کتاب او سنت پرته نور څه وو؟

انشراح صدر د ضيق صدري په مقابل کې دی چې د نفس تنګی په بڼه په ځغاسته او مخ په لوړه پورته کېدو کې د انسان په جسم کې او د بې صبرۍ او بې حوصله ګۍ او نهيلۍ په بڼه د انسان په روح کې څرګندېږي، هاغه څه چې د نبوت، مخ پر لوړه پورته کېدو کې نفس تنګي راوړي، د معاندينو او د دين د دښمنانو د انکاري خبرو، دروغ ګڼلو، ملنډو او ناوړو ويناو زغمل دي [وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ](٢)[الحجر ١٥] د الله رسول فرمان مونډلی چې د هغوی د سخترينو په وړاندې خپل زغم له لاسه ور نه کړي [فَلَعَلَّكَ تَارِكٌ بَعْضَ مَا يُوحَى إِلَيْكَ وَضَائِقٌ بِهِ صَدْرُكَ أَنْ يَقُولُوا لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ...](٣).[هود ١٢].

اوبل دهغوی د مکر اوحيلو په وړاندې(....وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ مِمَّا يَمْكُرُونَ) (٤) او هغه هڅې او چل ول دی چې منکرين يې کاروي. د الله رسول بايد د رسالت په ابلاغ کې له نفساني انفعالاتو او اغيزو آزاد شوی وي، حزن او غم (...وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ...) (٥)، د صدر ضيقي (...وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ...) (٦)، بيړه او عجله (فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ...، ... وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَهُمْ...)، (٧) حرص پر ايمان (وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ) (٨)، وژونکی غم او ناخوښي (لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَفْسَكَ...) (٩) او داسې نور...دي په زړه مه راوړه او په مقابل کې، له صبر او توکل او تسبيح او سجدې او عبادت مدد واخله: فَاصْبِرْ لِحُكْمِ رَبِّكَ...(١٠)، ...وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ...(١١)، فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِنَ السَّاجِدِينَ. وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّى يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ.(١٢)، دا د انشراح صدر معنا ده، خو د « وضعنا عنک وزرک ...» مفهوم له هغه نقش او رول څخه چې پيغمبر يې د خلکو په وړاندې لري [د اعراف سورت له ١٥٧ آيت څخه] مونډلی شو:

الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ.... يَأْمُرُهُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَاهُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُحِلُّ لَهُمُ الطَّيِّبَاتِ وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ .... (١٣)

هغه کسان چې د اُمي نبي رسول پليوني کوي .... دوی نېکۍ ته رابولي او له بدۍ يې منع کوي، او دوی ته پاکيزه شيزونه حلالوي او خبيث او ناولي شيزونه پرې حراموي او [د شرک د فرهنګ] دراندده بارونه او [د دنيا د مال اوشتمنيو د تړاو] بندونه او زنځيرونه چې پر دوی وو لېرې کوي.

دا سمه ده چې پيغمبر د الله تعالی د سپيڅلي، پارساترين او پاکترين مخلوق په توګه دا ډول «اصر» [پېټي] او کوم «اغلال» [قيدونه او بندونه] نه درلودل، خو د رسالت دروند بار او د «وزر» نسبي والي ته په

پاملرنه، په ځانګړې توګه هغه توقعات او هیلې چې پالونکي رب د خپل مخلوق له غوره ترين ځخه درلودل، د «وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ. الَّذِي أَنْقَضَ ظَهْرَكَ » آيتونو معنا په بهتره توګه پوهېدای شو. او بالاخره د پیغمبر د ذکر رفع او اوچتول« وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ »، د هغه مکتب له پراخېدو سره چې راوړی یې وو او د هغه دنوم او یاد اوسنت په جاوېدانګۍ او تل پاتېتوب رښتینی شو او تحقق یې وموند. په داسې ډول چې وسمهال هیڅ یو یاد او نوم لکه د هغه د نوم په څېر نړیوال، اوچت او خپور نه دی.

دا «رفع ذکر» په واقعیت کې د هماغه « درجې د رفع» او اوچتېدلو نښه، پایله او اغېزه ده چې پیغمبر ورته رسېدلی وو او د پیغمبر د علم او ایمان له ترفیع حاصل شو:

... يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ ....(۱۴) [مجادله ۱۱ (۱۱:۵۸)]

....الله به له تاسو هغه کسان په درجو کې اوچت کړي چې ایمان یې راوړی دی او هغه کسان چې هغوی ته علم ورکړی شوی دی. ......

..... نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَنْ نَشَاءُ وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ . (۱۵)[یوسف ۷۶(۱۲:۷۶)]

.....چاته چې موږ وغواړو په درجو کې یې اوچتوو او د علم والا له پاسه لوی عالم دی.

دادی هغه پیغمبر چې له ټولو ښکاره او پټو (دنورو له لېده) نعمتونو څخه برخمن شوی دی او د بېوزلۍ، فقر او یتیمۍ ترخه تجربه او د رحمت او نعمت خوږوالی یې څکلی، کولی شي « له آسانۍ سره د سختۍ د ملتیا» د اصل ژوره معنا و مومي او نورو ته یې ابلاغ کړي: «فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا».

اوس چې داسې ده، نو د هر مسؤلیت له سرته رسولو او له هغه څخه تر فراغت وروسته، لکه د غرګرځي په څېر چې له لېږې دمې او ساه اخېستلو وروسته، د بیا او لا پورته کېدو تکل کوي، باید د لا درندو مسؤلیتونو هرکلي ته لاړ شي او مخ په وړاندې ګام اوچت کړي«فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ». خو چرته او د چا په مینه کې؟ .... د هغه چا لپاره چې د خپل پالونکي رب بې نهایته لوړه څوکه یې پېژندلې، د داسې اوچتېدو او مخ په لوړه تګ رغبت دا ډول کشش او جاذبه رامنځته کوي چې هر ګام یې وصولي لذت او خوند لري.
نو : «وَإِلَى رَبِّكَ فَارْغَبْ.»

---

بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ
أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ﴿۱﴾

آیا ستا سینه مو درته پراخه نه کړه [= د سینې پراخوالی او د سختیو د زغم وړتیا مو تاته درنکړه]؟[1]

وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ﴿۲﴾

او ستا دروند پېټی مو ستا [له اوږو] څخه لېرې نه کړ؟![2]

## الَّذِي أَنْقَضَ ظَهْرَكَ﴿۳﴾

هاغه [د يتيمۍ او فقر پېټی] چې ستا ملا يې ماتوله.[۳]

## وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ﴿۴﴾

او ستا نوم او اوازه مو درته لوړه نه کړه.؟[۴]

---

د «انشراح» سورت له دريو پوښتنو سره او په واقعيت کې پيغمبر ته په دريو يادونو پيل کېږي. لومړی: أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ.«شَرح» يعنې پرانېستل او پراخول.«صدر» يعني سينه. پوښتنه کوي آيا ستا سينه مو درته پرانېستې او پراخه نه کړه؟ خو دسينې څخه مطلب کومه سينه ده؟ د «سينې» کلمه دلته استعاري معنا لري. نو په دې کې شک نشته چې دلته د «انشراح صدر» څخه منظور، د هغه کنايي معنا ده او هغه د پيغمبر (ص) روح او فکر ته پراختيا ورکول دي او دا پراختيا کولی شي ډېر وسيع مفهوم ولري، چې هم د وحی په توسه د پيغمبر علمي وسعت په کې شامل دی او هم د مخالفانو او دښمنانو د لجاجت او خنډ اچولو په وړاندې د پيغمبر د زغم او ټېکاو، وسعت او پراختيا په کې شامليږي.

لومړی به ددې کليمو په اړه لنډه توضيح ورکړو او وروسته به يې ډېر وڅېړو. وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ. «وضع» يعني لېرې کول او کوزول. عَنْکَ يعني له تا. وِزر يعني دروند پېټی. آيا هغه دروند پېټی چې ستا پر شا وو لېرې مو نه کړ او يا کوز مو نه کړ؟ الَّذِي أَنقَضَ ظَهْرَكَ. هغه بار چې ستا ملا يې ماتوله، هغه ملا ماتوونکی پېټی! وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ. آيا ستا «ذکر» ته مو رفعت او اوچتوالی ورنکړ؟

دا أيتونه چې د بعثت په دويم کال کې نازل شوي دي، د پيغمبر په حق کې، الهي عنايتونو،احسانونو او پاملرنو ته په هغه يو کال کې، چې د هغه له رسالته تېر شوی وو يوه اشاره وه. فرمايي په دې تجربه کې چې دې وکړه او ستا پيغام په ټولنه کې مطرح شوی دی، درې لاسته راوړنې دې درلودې: لومړنی، د سينې پسور، ګنجايش او وړتيا دې زياته او پراخه شوې ده. دويم ، د دروند پېټي لېرې کېدل دي چې ستا ملا يې کړوپه کړې وه. دريم يې، ستا د ذکر لوړتيا او رفعت موندل دي.

«شرح صدر» يو له الهي نعمتونو څخه دی يعني د زړه تنګۍ او خوابدۍ لېرې کول دي، چې د انسان حوصله پراخه، او انسان د وړتيا او زغم خاوند شي، دا راز يو څوک ښاد، خوښن او

بانشاطه وي او تل کار ته چمتو وي، خو پر عکس يې «وَمَنْ يُرِدْ أَنْ يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ » (۱۶) [الانعام (۶/۱۲۵)]، او چې هغه (الله) د چا د ګمراه کولو اراده وکړي (نو) د هغه سينه تنګه کړي بيخي تنګه، ګواکې هغه په سختۍ سره پورته آسمان ته خېژي. هغه څوک چې لوړې ته اوچت شي په خپګان او نفس تنګۍ اخته کېږي ځکه چې په پورته فضا کې د هوا اکسيجن مخ په لږوالي شي او همدا لامل دی چې الوتکه چلوونکي بايد د هوا په لوړو پوړونو کې د مصنوعي تنفس وسايل له ځانه سره ولري، هغه څوک چې شرح صدر لري د ديني مسئلو او ټولنيزو مبارزو په وړاندې خوښ، ښاد او تازه دی، خو د دنياوالۍ زر او زور، ځور او ظلم په وړاندې ناخوښ دی او هغه څوک چې د ارشاد په مقام کې دی چې شرح صدر ونلري هيڅ کار سرته نه شي رسولی. د لا ښه توضيح لپاره لانديني مثال ته پاملرنه وکړئ:

يو غرګرځی په نظر کې ونيسئ چې غواړي يوې څوکې ته اوچت شي يا له يوې لوړې برخې پورته لاړشي، بايد درې خيزونه يو له بله سره يو ځای ولري: د سينې پراختيا، پسور او وړتيا يې بايد زياته وي. حتماً به مو تجربه کړي وي، هغه مهال چې مخ په لوړه ځو، ساه نيولي، ساه نيولي کيږو، ځکه چې ساه مو لنډيږي. نو هر څومره چې زموږ د سينې پنجره پراخه وي کولی شو ډېر اکسيجن واخلو او په بيړه مخ په لوړه لاړ شو. هرې لوړتيا ته د پورته کېدو لومړی شرط دادی چې ښه ساه کش کړې او هوا سږو ته دننه يوسې.

خو دويم شرط: که دروند پېټی دې پر شا وو چې ستا حرکت ورو کوي او مخ پر لوړه تګ دې ستونزمن کوي. هغه پر ځمکه کېږدې او له درانده پېټي سپک شې. دا په هماغه کچه ارزښت او اهميت لري چې تنفس دې تقويه شي. نو لومړی خبره د «صدر» او سينې له «انشراح» او پرانيستو ده، او وروسته وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ. الَّذِي أَنقَضَ ظَهْرَكَ. د «وِزر» لېرې کول او کوزول دي چې و مو ويل د ملا ماتوونکي بار په معنا دی. «وِزر» په لغت کې د درونداوالي په معنا دی، د «وزير» کلمه هم له همدې «وِزر» څخه مشتق شوې ده، د هغه چا په معنا چې د پاچا او واکمن بار او کار د هغه له اوږو لېرې کوي او له هغه سره مرسته کوي چې د کار درونداوالی يې کمتر شي او د حکومت درانده بارونه پر اوږو اخلي. او ګناه ګانو ته هم له همدې لامله «وِزر» وايي ځکه چې د ګناه ګار پر ولو دروند بار دی.

«أَنْقَضَ» د «نقض» له ريښې د طناب د غوټې د پرانېستلو په معنا، يا د ودانۍ د نښتو او تپل شوو برخو د بېلولو په معنا دی، او «انتقاض» هغه آواز ته ويل کېږي چې د ودانۍ د ټوټو د بېلېدو پر مهال غوږ ته رسېږي، يا هغه لرګينه ودانۍ چې ډېر بار پرې کېښوول شي د لرګو د جرق جرق غږ يې زموږ غوږونو ته رسېږي يا د ملا د تير د مهرو غږ چې د دروند بار تر لاندې وي او ټکهار کوي.

او دا کليمه د پيمانونو او تړونونو د ماتولو په اړه هم کارول کېږي او وايي فلانې خپله وعده او تعهد نقض کړ. په دې ترتيب دا آيت وايي: الله تعالی هغه دروند پېټی او ملا ماتوونکی بار له تا لېرې کړ.

د ا کوم بار وو چې الله تعالی د خپل استازي له اوږو لېرې کړ؟ د آيتونو قرائن په ښه توګه څرګندوي: چې منظور يې هماغه د رسالت او نبوت، او د توحيد او يو الله ته د تسليم په وړاندې ستونزې، او د ډېر خيرن او ککړ چاپېريال څخه د فساد د اغېزو لېرې کول دي، نه يوازې د اسلام پيغمبر، چې ټول پيغمبران د نبوت په پيل کې له دا ډول سترو ستونزو سره مخامخ ول، او له الهي مرستو او امدادونه سره پر هغوی بريالي کېدل ، منتها د اسلام د پيغمبر په زمانه کې د محيط او چاپېريال شرايط له ځينو اړخونو له مخې له پخوانيو هغو څخه سخت تر او ډېر درانده ول.

ددغو دواړو نتيجه څه کيږي؟ وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ. ستا ذکر مو لوړ کړ. «ارتفاع» يعني لوړول او رفعت ورکول. لکه څنګه چې مو وويل، دا ټول بايد تمثيل او استعاره وګڼو. چون دا ډول معنا ګانې نه شي کېدی په ښکاره او متعارفه ژبه بيان شي. نالوستو او بېسواده عربانو څنګه کولی شو څوارلس سوه کاله مخکې په دې معناګانو پوه شي، خو د دې کليمو په استعاري معناو ټول پوهېږي او هغوی هم پوهېدل.

د «شرح صدر» کليمه په قرآنکريم کې په مکرره توګه په مختلفو بڼو راغلې ده. له هغې جملې د حضرت موسی (ع) په پېښه کې هغه مهال چې د طور په غره کې الله تعالی هغه ته فرمان ورکوي چې د فرعون په لور لاړ شه چې طغيان يې کړی دی، موسی هم چې يو قبطي فرعوني يې وژلی وو او لس کاله کېږي چې له مصره تښتېدلی وو، وايي: رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي. (۱۷) پالونکيه ربه سينه مې پرانېستې او پراخه کړه. مطلب څه دی؟ يعني ډېره سخته او ستغه لوړه بايد سر کړم . ما چې قتل کړی فرعون ته ورشم چې ما قصاص کړي؟. ښه، نو دا خو څرګنده

ده چې سمدلاسه به مې ووژني. ددغه کار له فکر او تشويشه هم د سړي سينه تنګېږي او ساه يې بنديږي. موسی (ع) په ښه توګه احساسوله چې دا ډېره درنده او له ځواکه پورته دنده ده. نو پالونکيه ربه سينه مې راته پرانيستې او پراخه کړه. يعني داسې وکړه چې وکولی شم، د داسې سختې مقابلې لپاره چمتو شم. وَيَسِّرْ لِي أَمْرِي.(۱۸) او کار مې راته آسان کړه. او ورور مې هارون زما د مرستې لپاره راسره ولېږه: هَارُونَ أَخِي. اشْدُدْ بِهِ أَزْرِي.(۱۹) چې هغه زما «وزر» پورته کړي او يوه اندازه زما له باره اوچت کړي.

دلته هم وينو چې موسی د «ذکر» خبره کوي: كَيْ نُسَبِّحَكَ كَثِيرًا. وَنَذْكُرَكَ كَثِيرًا.» (۲۰) [طه (۲۵ – ۳۴)] چې تا ډېر ياد کړو او په پاکۍ دې وستايو. له «ذکر» څخه د موسی موخه دا وه چې د هغه له هڅې سره سم د الله نوم او ياد د فرعون د نوم او ياد په مقابل کې مطرح شي. «ذکر» قرآني اصطلاح ده؛ «انشراح صدر» هم همدا ډول چې د «ضيق صدر» په مقابل کې ده.

ضيق صدر يعني سينه تنګي. هغه څوک چې د صدر په ضيقوالي اخته دی نشي کولی سم تنفس وکړي. د پاملرنې وړ ده چې الله تعالی کله چې وغواړي چاته هدايت وکړي، فرمايي يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلإِسْلاَمِ ، سينه يې الله ته د تسليم او د اسلام منلو لپاره پراخېږي. يعني کولی شي الله ته د تسليم په چاپېريال کې ساه وباسي. انسان يو مهال نه غواړي د حق په هوا او فضا کې تنفس وکړي. يو مهال هم داسې وي چې د هغه پرعکس غواړي د حق هوا استشمام کړي؛ سينه يې پرانېستې ده، د سينې فضا يې د حقيقت لپاره پراخه ده په داسې ډول چې لکه د حق عطر د خپل ټول وجود په توسه استشمام کوي؛ داسې کسان هم شته چې له حق او حقيقت څخه نفرت لري او غواړي ترې وتښتي. قرآن وايي چې ددغه راز کسانو سينه د الله تسليم ته پرانېستې نه ده. كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاء او حق ته تسليمېدل ورته دومره سخت دي لکه چې غواړي آسمان ته و خېژي. د پاملرنې وړ دي ټول لغتونه چې په دې باب کې کارول شوي دي، ټول هغه لغتونه دي چې په غرګرځنې کې کارول کيږي. وايي هغه کسان چې خپلې سينې کفر ته پرانېزي نه شي کولی آسمان ته پورته شي:

فَمَن يُرِدِ اللّهُ أَن يَهْدِيَهُ د هغه چا چې الله د هدايت اراده کړې وي يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلإِسْلاَمِ سينه يې د «اسلام» لپاره، يعني حقيقت ته د تسليمېدو لپاره، پرانيزي. يعني په اسانۍ حق ته تسليميږي او د «تسليم» په فضا کې تنفس کوي.

وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ او دهغه چا په اړه چې د الله اراده د هغه د منحرفانه کړنو په پايله کې د هغه پر بې لارې تعلق نېولی وي، پرعکس ده؛ دا راز يو څوک د هدايت لپاره خپل قابليت او

ظرفيت له لاسه ورکوي. يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا. سينه يې تنګه او تړل کيږي؛ كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاء داسې کسانو ته د حق په وړاندې سر ټيټول دومره سخت او ستونزمن دي چې ته به وايې آسمان ته خيژي او مخ په لوړه ځي. او په دې ډول الله تعالی پر هغه کسانو چې ايمان نه راوړي د پليتۍ درونډ پېټی ږدي: يَجْعَلُ اللّهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لاَ يُؤْمِنُونَ.(٢١) [انعام(١٢٥)] هغوی چې ايمان نه راوړي له دې لامله دی چې د ناسمو کړنو پېټی يې دروندوالی کوي او نه شي کولی لوړتيا وکړي او پورته لاړ شي.

دا د «انشراح صدر» کليمه، په قرآن کې د پاملرنې وړ کليمو څخه ده او پر دې څرګند دلالت لري چې د انسان شخصيت ترلی يا پرانېستی او پراخيږي. يعنې يو مادې عمل نه دی چې د انسان ظاهري سينه ترې مقصود وي بلکه دلته له صدر څخه مقصود د انسان قلب دی په دې اعتبار چې قلب په سينه کې ځای لري، خو بيا خپله قلب هم له هغه حقيقته کنايه ده چې د انسان په قلب پورې اړه لري، يعنې د انسان روح او نفس. نو «شرح صدر» هره معنا چې ولري په هر حال يو روحي او معنوي مفهوم لري نه يو مادي او جسماني مفهوم.

کوم مهال چې زموږ يو څيز يا يو څوک خوښيږي، غواړو هغه په غيږ کې ونيسو، يا په پرانېستې غيږه د هغه په لور ورځو، خپله سينه د هغه د هرکلي لپاره پرانيزو. په پښتو کې وايو له پرانېستې غيږې سره. يعنې د يو چا د هرکلي لپاره د غيږې پرانېستل. خو په عربي کې وايي سينه يې پراخه شوه. کله کله په پښتو کې هم وايو په پراخ ټټر يې ترې هرکلی وکړ. ته به وايي چې د هغه چا له ليدلو چې محبوب يې دی د راحت ساه اخيستې ده. يا کله داسې هم وايو زما خبرې په پراخه سينه واوره، يعنې په حوصله مندۍ او زغم ورته غوږ کېږده يا وايو سختيو ته سينه پراخه کړه، يعنې زغم پيدا کړه او حوصله له لاسه مه ورکوه. چې معمولاً مفسرينو او ژباړونکو هم د «شرح» کليمه په «شرح صدر» کې «سعه» معنا کړې ده؛ يعنې د سينې پراخوالی. «سعه صدر» يو تعبير دی چې په عربي ژبه کې شته. مثلاً يو روايت دی چې: آلَةُ الرِّئَاسَةِ سَعَةُ الصَّدْرِ ؛ يعنې د رياست «يا مديريت » وسيله او توکی «سعه صدر» دی، دلته هم جوته ده چې د «سعه » د کليمې معنا پراخوالی دی. او دا هم څرګنده ده چې دلته دا مقصود نه دی چې هر څوک چې مثلاً د پهلوان په څېر پلنه سينه ولري د رياست توکی لري خو څوک چې يو نازک او نری سړی وي، د رياست توکی نه لري؛ بلکه سعه صدر، يعنې ډېره پراخه حوصله؛ يعنې که يو څوک وغواړي چې مدير او رئيس اوسي او غواړي له خلکو سره سر او کار ولري او يو زيات شمېر نور اداره کړي، شرط يې دادی چې ډېره پراخه حوصله ولري. د

لږې حوصلې والا او عصباني غوسه ناک خلک چې ډېر ژر ناراحته او غوسه کيږي نه شي کولی مدير يا رئيس اوسي او يو ټولی اداره کړي، که دا هر ډول يو مديريت وي. يو ښوونکی که وغواړي يو ټولګی اداره کړي، که د تنګې حوصلې والا سړی وي نه شي کولی اداره يې کړي که يو سړی غواړي په خپل شخصي ژوند کې خپله کورنۍ اداره کړي، هم بايد سعه صدر ولري. په هر نسبت چې د انسان د مديريت دايره پراخه وي هغومره ډېرې حوصلې او «سعه صدر» ته اړتيا لري.

مفسرينو معمولاً، دلته هم همدا معنا ذکر کړې ده او ويلي يې دي چې الله تعالی پيغمبر ته د احسان په توګه ددې نعمت يادونه کوي چې آيا موږ دا د کار توکی، دا ډېره زياته حوصله، لنډه دا چې دا سعه صدر، او دا روحي ډېر ستر ظرفيت او وړتيا مو تاته نه ده درکړې؟! يعنې درکړې مو ده. خو داسې برېښي چې د «شرح صدر» کليمه د «سعه صدر» له کليمې سره يو مقدار توپير لري، په هر ځای کې چې شرح صدر وي يو ډول سعه صدر هم شته، خو هرې سعه صدرې ته شرح صدر نه شي ويل کېدی. قرآن کې د «سعه صدر» کليمه نه ده ذکر شوې بلکې «شرح صدر» يې فرمايلي أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ. شرح يعنې څه؟ وسمهال چې کومه معنا د شرح لپاره رواج ده هغه داده چې مثلاً يو څوک يو کتاب يا يو متن ډېر لنډ او غوره ليکي په داسې ډول چې هرڅوک نه شي کولی د ليکونکي مقصد او موخه درک کړي، بيا يو بل څوک پيدا کيږي او دا کتاب او متن شرح کوي؛ يعنې په دې توګه هغه څېړي او پرانيزي، بيا تاسو وينئ چې دا شخص د هغه متن له يوې کرښې يوه پاڼه مطلب راوباسي. هغه کسان چې ډېر ژور دي کولی شي دا ډول کتابونه شرح کړي. يا مثلا کله کله يو، نيم شعر يو کتاب شرح غواړي. البته هر شاعر نشي کولی داسې يو شعر ووايي چې يو کتاب مطلب په کې وي، خو داسې کسان شته چې په يو شعر کې يې يو کتاب مطلب وي، لکه مولوي، حافظ، رحمان بابا يا بيدل. دوی د خپلې زمانې پر معارف او فرهنګ، او خبرو او بيان برلاسي خلک دي. ډېرو سترو عالمانو د نوموړو په يو يو بيت کتاب يا رساله ليکلې ده چې د هغوی موخه او مقصد شرح کړي! دې ته وايي «شرح». له لغوي پلوه د شرح اصل هغه کار دی چې قصاب يې کوي چې يوه ټوټه غوښه په نازکو پردو بدلوي که وغواړئ هغه وغوړوئ شايد د يوې کوټې غولی وپوښي. نو د يو راټول څيز خپرولو او پرانيستلو ته وايي شرح؛ منشرح کول يعنې پرانيستل.

د شرح صدر مسئله يوه روحي او رواني موضوع ده. په هستۍ کې هيڅ څيز د انسان د روح او روان په کچه شرح ته اړتيا نه لري. دا چې په قرآن کې حضرت رسول ته وايي «آيا موږ ستا

باطن شرح نه کړ؟» نه غواړي صرفاً دا ووايي چې موږ ستا باطن ته توسعه او پراخوالى ورکړ. فرض کړئ يو کور دوه سوه متره اوږدوالى ولري او سل متره پرې ورزيات کړو دلته وايو «دې کور ته مو توسعه ورکړه» خو دا نه وايو شرح مو کړ. هر ځاى کې چې شرح وي قهراً توسعه هم ده خو هر ځاى کې چې توسعه وي شرح نه ده. دلته نه غواړي ووايي لکه څنګه چې ځمکې ته توسعه ورکوي موږ ستا د روح ظرف لوى او پراخه کړ، بلکې وايي: موږ دا ستر ظرف يو له بله پرانېست، ددغه روح يو پر بل اېښوول شوې صفحې مو ستا لپاره پرانېستې. نو پر دې بنا هره صدري سعه«شرح صدر» نه دى خو هره صدري شرح د سعه صدر مستلزمه ده.

او س نو دې پوښتنې ته بايد ځواب ورکړو چې آيا هره صدري شرح «شرح صدر» د انسان لپاره سعادت او نېکمرغي ده؟ نه، ځکه چې د انعام سورت په ۱۲۵ آيت کې چې پورته مو ذکر کړ، الله تعالى فرمايي: فَمَن يُرِدِ اللّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلإِسْلاَمِ.... [هغه چا ته چې الله وغواړي هغه ته هدايت کوي] سينه يې د اسلام او حقيقتونو لپاره خپړي او پرانيزي. په واقعيت کې دلته په دې سورت کې فرمايي: أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ. يعني أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ لِلتَّوْحِيدِ (يا: لِلْأِسْلام)، که نه نو کېدى شي يو څوک د کفر لپاره «شرح صدر» پيدا کړي يو ساده بسيط سړى «شرح صدر» نه لري خو واى افسوس په دې حال چې انسان د کفر په جهت کې «شرح صدر» او يو ډول معنوي او روحي جوشش پيدا کړي؛ يعنې دا پانګه او سرمايه د کفر په جهت کې وګومارل شي. قرآن فرمايي:...وَلَكِنْ مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا فَعَلَيْهِمْ غَضَبٌ مِنَ اللَّهِ.... (۲۲) [نحل(۱۰۶)] او ليکن هغه څوک چې کفر ته خپله سينه پرانېزي نو پر دوى د الله له لورې غضب دى.

نو په هر حال دلته موخه او مقصد «شرح صدر» دى او «شرح صدر» غير له «سعه صدر» څخه دى. «شرح صدر» دادى چې الله د انسان دا يو تر بله نښتى او تړل شوى روح پرانېزي او خپل نور په هغه کې اچوي. د اسلام لپاره «شرح صدر» داسې يو ښېز دى. او د همدغه الهي «شرح صدر» په توسه الله تعالى ډېر ستر حکمتونه د يوه اُمّى نفر پر ژبه جاري کوي.

أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ. آيا موږ تاته «شرح صدر» در نه کړ؟! آيا تاته مو منشرح شوې سينه نه ده درکړې چې علم او حکمت او حقيقت ترې وخوټېږي؟!

اصولاً هيڅ يو ستر رهبر نه شي کولی له «شرح صدر» پرته د ستونزو او مشکلاتو په وړاندې مبارزې او مقابلې ته ولاړ شي او هغه څوک چې رسالت يې تر ټولو ستر او عظيم تر دی (لکه حضرت رسول اکرم) د هغه «شرح صدر» بايد تر ټولو ډېر او زياتر وي.

څرنګه چې په پيل کې د پيغمبر لپاره د رسالت د بار لېږدول ډېر سخت وو. يوسړی چې يتيم، فقير او بې پناه لوی شوی، اوس غواړي په يوازې سر د يوې فاسدې، منحطې او مخ پر زوال ټولنې په مقابل کې ودرېږي. داسې يوه ټولنه چې په هغې کې له پېړيو راهيسې شرک او بت پالنې ځای نيولی. اوس هغه غواړي د ټولو مشرکانو په مقابل کې «نه» ووايي. نو دا خو ډېر سخت او ستونزمن کار دی. له دې لامله دی چې پيغمبر ته وايي آيا موږ ته ددې کار لپاره ځواکمن نه کړې؟ «وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ. الَّذِي أَنْقَضَ ظَهْرَكَ» او آيا هغه دروند پېټی مو چې ستا ملا يې ماتوله له تا لېرې نه کړ؟ يعني [ د دعوت کار او] بار مو درته سپک کړ، درته مو آسان کړ، تا دعوت وکړ او خلکو قبول کړ. کله چې پيغمبر دعوت او بلنه وکړه او وروسته په تدريج د مدينې په دوران کې خلک پوځ پوځ د الله په دين مشرف کېدل، دلته وو چې د پيغمبر د اوږو بار لېرې شوی او [کار يې] آسان شوی وو. او کار او دنده يې سر ته رسولې وه. او غواړي دا ووايي چې دا بار دومره درون وو چې ستا د ملا له هډوکو يې ټکهار اېستلی وو او نژدې وو چې ستا ملا ماته شي او وګوره چې څرنګه مو هغه بار له داسې دروندوالي سره ستا له اوږو کوز کړ او ته بريالی شوې.

وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ. خو «رفع ذکر» [يا د ذکر لوړول]. چې کابو ټولو ژباړونکو ليکلي چې آيا ستا آوازه مو اوچته نه کړه؟ آيا دې ژباړونکو له ځانه پوښتنه نه ده کړې چې مګر آيا پيغمبر په دې پسې وو چې نوم يې د هر چا په ژبه وي؟ آيا پيغمبر غوښتل چې مشهور شي؟ دا نو څه خبره ده چې الله پيغمبر ته ووايي چې زه به دې ژر مشهور کړم او نوم به دې د هر چا پر ژبه کړم؟ دا د پيغمبر په څه بنه راځي؟ يا زموږ د دنيا او آخرت په څه درد لګي؟

د پيغمبر «ذکر» يعني څه؟ له دې معنا څخه يې غفلت کړی چې د قرآن نوم «ذکر» دی: إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ.(۲۳)، وَأَنزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ(۲۴). «ذکر» يعني بيداري، و ښنتيا، د بيدارۍ او ويښتيا پيغام. او قرآن په ټوله کې د بيدارۍ وسيله ده. نو، فرمايي ستا پيغام ته مو رفعت ورکړ. مګر پيغمبر څه ارزو درلوده؟ آيا پيغمبر غوښتل مشهور او معروف

شي؟ مګر غوښتل يې يو ځای ته ورسيږي؟ هغه «پيغام» راوړونکی دی او «ذکر» يې همدغه پيغام او کتاب دی هغه د همدغه پيغام رفعت او لوړتيا غوښتله.

د آيت خطاب په دې معنا دی چې د همدغه يو کال په اوږدو کې تا وليدل چې ستا پيغام ټول ځايونه نېولي دي. اوس ددغه مطلب پوهېدل موږ ته ډېر ستونزمن دي، ځکه چې زموږ په زمانه کې خبر ډېر ژر هر ځای ته خپريږي. څه موده مخکې، په هالنډ کې يې د اسلام پر ضد يو فيلم جوړ کړ چې مسلمانانو يې د ننداريې او خپرولو مخه ونېوله او پرې نښودل يې چې د پردې پر مخ راشي او په پای کې د اروپا مجلس هم د فيلم د ننداريې او خپرولو مخه ونېوله او د فيلم خپرېدل يې منع کړل. خو لږه موده لا تېره نه وه چې دې فيلم له انټرنيټه سر راوايست او په يو ځل په ټوله نړۍ کې خپور شو. دا بېلګه په ښه توګه څرګندوي چې زموږ په نړۍ کې، د هيڅ خبر او نظر د خپرېدو مخه نېول کېدای نه شي. هر څوک چې کوم فکري توليد ولري په «يوټيوب» کې يې اچوي او دنيا ترې ډکوي. خو په هغه زمانه کې، په يوه لېرې پرتې جزيره کې يې څنګه کولی شو چې يو څوک خپله خبره ټولو نړيوالو ته ورسوي؟ ځکه چې داسې کومې وسيلې شتون نه درلود.

قرآن، د حضرت موسی او فرعون په قصه کې، وايي هغه مهال چې موسی خپله عصا واچوله او عصا يې اژدها شوه او لاس يې له ګرېوانه راوايست او د هغه نور د خلکو سترګې تتې کړې، فرعون جارچيان ولېږل چې په ښارونوکې جار ووهي او ساحران د موسی سره د مقابلې لپاره خبر کړي: وَأَرْسِلْ فِي الْمَدَائِنِ حَاشِرِينَ. (۲۵) يعنې د خبر د خپرولو او د خلکو د خبرولو لپاره له دې پرته بله کومه وسيله نه وه چې مثلاً دوه سوه کسان يې هر ښار او کلي ته ولېږل چې يو خبر خلکو ته ورسوي. دا د المپيک مشعل هم، چې د يونانيانو يادګار دی، همدا دنده يې درلوده. هغه مهال به چې يونانيانو کوم ښار يا ملک کې سوبه لاسته راوړه، سرتېري به يې مشعل په لاس له جبهې تر ښاره ځغاسته کوله چې خلک خبر کړي. په تاريخ کې راغلي چې کله معاويه فوت شو په ولايتونو کې تر دوه درې هفتو پورې ترې هيڅوک خبر نه ول، چې بيا وروسته استازي راغلل او خلکو ته يې خبر ورکړ چې يزيد دهغه پر ځای پر خلافت ناست دی او تاسو بايد ورسره بيعت وکړئ. نو پر دې بنسټ، پيغمبر په يوه قبيلوي ټولنه کې څنګه کولی شو خپل پيغام په آسانه توګه خلکو ته ورسوي؟ وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ. او ستا ذکر ته مو اوچتوالی او رفعت کړ او آوازه يې د خلکو تر غوږو ورسيده.

الله تعالی دا خبره په هغه وخت کې فرمايلې وه چې چا سوچ هم نه شو کولی چې د يوازې يوه وګړي او د هغه د ګوتو په شمېر محدودو ملګرو سره چې هغه هم د مکې ښار تر بريده محدود ول پيغام به يې په دې ډول نړيوال کيږي او آوازه به يې تر لېرې لېرې خپريږي، خو الله تعالی په هغه حالت کې دا زيری خپل استازي ته واوراوه، چې د رسول الله او د هغه د ګوتو په شمير اصحابو په ظاهري امکاناتو ناشونی برېښېده، خو الله تعالی په ډېره په زړه پورې طريقه هغه پوره کړ د هر کار او هر فکر يا هر تو ليد د مشهوررولو لپاره لکه څنګه چې مو وويل تبليغات مهم رول لوبوي، هره تبليغاتي دستګاه، مثلاً د هرې کارخونې او مؤسسې د عمومي اړيکو، مهمه وظيفه او دنده همدا ده چې د فکر او اند محصول يې ښه ډېرتر او بهتر معرفي کړي او څومره چې کېدوني ده پېرودونکي د خپل محصول له کيفيته خبر کړي. نو الله تعالی په پيل کې د خپل پيغام د خپرولو لپاره د خپل استازي د دښمنانو له تبليغاتو کار واخيست. د نورو طريقو تر څنک يوه دا وه چې: د حج پر مهال به چې خلک په جوپو جوپو مکې ته راتلل، په هغه مهال به د مکې د مشرکينو او کفارو پلاوي د حاجيانو ديرو ته تلل او خلک به يې خبرول چې دلته يو خطرناک شخص د محمد په نامه شته چې په خلکو داسې جادو کوي چې د پلار او زوی، او وروڼو تر منځ يو تر بله او د مېړه او ښځې ترمنځ جدايي او بېلښت رامنځته کوي، تاسو خبر اوسئ او خپل ځانونه ترې بچ وساتئ، او همداراز خبرې به يې د حج له ورځو پرته په نورو مهالونو کې چې خلک به زيارت ته يا تجارت ته يا کوم بل کار لپاره مکې ته راتلل، خلکو ته کولې، سره له دې چې هغوی به په خپل زړه د حضرت رسول نوم بدي کوله خو د مشرکينو ددې کړنو پايله او نتيجه دا شوه چې د عربستان د ټاپووزمې ګوټ ګوټ ته د هغه نوم ورسېد او د مکې له محدوديت څخه راووت او د هيواد ټولو قبيلو ته وپېژندل شو. له دې وروسته دا طبيعي ده چې خلک دا معلوم کړي چې هغه شخص څوک دی؟ څه وايي؟ څنګه سړی دی؟ د هغه له «جادو» څخه اغيزمن خلک څوک دي او پر هغوی د «جادو» څه اغيز شوی دی؟ د مکې د کفارو پروپاګند او تبليغات چې هر څومره زياتېدل په هماغه اندازه په خلکو کې په دې اړه پلټنه او څېړنه لا زياتېده او بيا ددې پلټنې او څېړنې په نتيجه کې خلکو ته د حضرت رسول د اخلاقو، سيرت او چلن حال معلوم شو او کله چې خلکو قرآن واوريد هغوی ته معلومه شوه چې هغه ښوونه او تعليمات څه دي چې حضرت رسول وړاندې کول؟ او کله چې کتونکو دا وليدل چې هغه څه ته چې جادو ويل کيږي له هغه څخه د اغېزمنو ژوند د عربو د عامو خلکو له ژوند څخه څومره توپير لري نو هغه بدنامي، نېک نامۍ ته په بدلېدو

شوه. ان تردې چې د هجرت تر مهاله تر دې بریده ورسېده چې لېرې او نژدې کابو د عربو ټولو قبیلو ته په یوه بڼه نه یوه بڼه د اسلام پیغام ورسېد او په هر قبیله کې یو چا نه یو چا یا ځېنو کورنیو اسلام قبول کړ، او په هرې قبیله کې لږو ډېر داسې خلک پیدا کېدل چې رسول الله او د هغه دعوت ورته په زړه پورې برېښېده او ورسره یې همدردي درلوده. دا د حضرت رسول د «رفع ذکر» لومړی پړاو وو. او تر هجرت وروسته هم د الهي پیغام د خپرولو لپاره د حضرت رسول او د هغه د اصحابو د دعوت او سرښندونو تر څنګ د مشرکینو، کفارو او د اسلام د دښمنانو تبلیغاتو هم مهم رول لوبولی او دا لړۍ لا دوام لري.

---

۱ـ د «شرح صدر» [یا د صدر د شرح] اصطلاح چې په تنفس او ساه اخېستلو کې د سینې د پراخوالي، او په سختیو او پورته ختلو کې د سختیو د زغم او تحمل نښه ده، د انسانی تمایلاتو او موخو په هوا کې په لېوالتیا او اختیاري توګه د سینې د پراخوالي لپاره یو تمثیل او بېلګه ده چې کېدی شي کفر وي [...مَنْ شَرَحَ بِالْكُفْرِ صَدْرًا... – نحل ۱۰ (۱۰۶:۱۶)] یا الله ته تسلیم وي، لکه څنګه چې په دې آیت کې او همدا راز د انعام سورت په ۱۲۵ آیت (۱۲۵:۶) کې راغلي دي:«[فَمَنْ يُرِدِ اللَّهُ أَنْ يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ وَمَنْ يُرِدْ أَنْ يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ كَذَلِكَ يَجْعَلُ اللَّهُ الرِّجْسَ عَلَى الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ]« هغه چاته چې الله وغواړي هدایت وکړي، سینه یې د حق لپاره پراخوي او هغه څوک چې وغواړي په بې لارې کې یې پرېږدي سینه یې تنګوي او حق نامنونکي یې ګرځوي، ته به وایې آسمان ته پورته کیږي! په دې ډول الله پر هغه چا چې ایمان نه راوړي د ګناه او پلیتۍ درون پېټی ږدي».

د «انشراح صدر» له تاریخي مصادیقو څخه، چې له فرعون سره د موسی په مقابله کې یې تحقق موندلی او لومړنۍ غوښتنه چې حضرت موسی، د فرعون سره د مقابلې له ماموموریت موندلو وروسته له الله کوي، همدا «د صدر انشراح» وو [قَالَ رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي وَيَسِّرْ لِي أَمْرِي – طه ۲۵ (۲۵:۲۰) او ۲۶ ].

۲ ـ د صدر یا صدور اصطلاح، په ټولو ۴۴ ځلو کې چې [ځانته یا له ضمیرونو سره ] په قرآن کې راغلې ده، مجازي معنا لري او نښې کېدلی هغه د ظاهري سینې پنجرې ته نسبت ورکړی شي. د انسان صدر، د هغه روحي وړتیا ده چې د قرآن په تعبیر، د تنګ نظر یا د پراخه نظر [ضیق صدر یا سِعه صدر] لرونکی کیږي [انشراح ۱ (۱:۹۴)، حجر ۹۷ (۹۷:۱۵) او نور موردونه]، سینه دې له تنګ نظرۍ روغتیا مومي [توبه ۱۴(۱۴:۹)، یونس ۵۷(۵۷:۱۰)]، او ناروغتیاوې لکه: وېره [حشر ۱۳(۱۳:۵۹)]، کِبر [غافر ۵۶(۵۶:۴۰)]، نیاز [حشر ۹ (۹:۵۹)]، د چارو پټول [نمل ۷۴ (۷۴:۲۷)، غافر ۱۹ (۱۹:۴۰) او ....]، دښمني [اعراف ۴۳ (۴۳:۷)] او شیطان په هغه کې وسوسه کوي او داخلیږي [ ناس ۵ (۵:۱۱۴) ]، الله سینې ازمايي [ آل عمران ۱۵۴ (۱۵۴:۳)] او خپل آیتونه په هغه کې واردوي [عنکبوت ۴۹ (۴۹:۲۹)] او .... له دې سره سره په قرآن کې ۱۲ ځله د سینو پر ذات د الله پر علیم والي ټینګار شوی دی.

د صدر انشراح د صدر د ضيقوالي په مقابل کې دی چې د بې صبرۍ او نهيلۍ له اغيزه د انسان په روح کې ځرګنديږي. هغه چې د نبوّت لوړتياو ته په پورته کېدو کې نفس تنګي راوړي، د معاندينو د انکار، ريشخند، ملنډو، دروغ ګڼلو او مسخره کولو زغم دی. [وَلَقَدْ نَعْلَمُ أَنَّكَ يَضِيقُ صَدْرُكَ بِمَا يَقُولُونَ – حجر ۹۷ (۹۷:۱۵) ] چې د الله رسول فرمان ونډلي وو هغه تحمل کړي [فَلَعَلَّكَ تَارِكٌ بَعْضَ مَا يُوحَى إِلَيْكَ وَضَائِقٌ بِهِ صَدْرُكَ أَنْ يَقُولُوا لَوْلَا أُنْزِلَ عَلَيْهِ كَنْزٌ أَوْ جَاءَ مَعَهُ مَلَكٌ ... – هود ۱۲ (۱۲:۱۱)]. د هغوي د مکر او حيلو په وړاندې [...وَلَا تَكُنْ فِي ضَيْقٍ مِمَّا يَمْكُرُونَ – نمل ۷۰ (۷۰:۲۷)]، په هڅو او چل ول کې چې کاروي، د هغوی له مکره په خوابدۍ او اندېښنه کې [...وَلَا تَحْزَنْ عَلَيْهِمْ ... – نحل ۱۲۷ (۱۶:۱۲۷)]، د صدر په ضيق والي کې [...وَلَا تَكُ فِي ضَيْقٍ ... – نحل ۱۲۷ (۱۲۷:۱۶)]، په بيړه کې د هغوی د هدايت لپاره [فَلَا تَعْجَلْ عَلَيْهِمْ ... – مريم ۸۴ (۸۴ :۱۹) ؛ ... وَلَا تَسْتَعْجِلْ لَهُمْ ... – احقاف ۳۵ (۳۵:۴۶)]، د هغوی پر ايمان په حرص کې [وَمَا أَكْثَرُ النَّاسِ وَلَوْ حَرَصْتَ بِمُؤْمِنِينَ – يوسف ۱۰۳ (۱۰۳:۱۲)]، د هغوي له نا باورۍ په وژونکې اندېښنه کې [فَلَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَفْسَكَ ... – کهف ۶ (۶:۱۸) او شعراء ۳ (۲۶:۳)]، او مقابل کې، له صبر او توکل او تسبيح او سجده او عبادت مرسته اخېستل: [فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِنَ السَّاجِدِينَ. وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتَّى يَأْتِيَكَ الْيَقِينُ. – حجر ۹۸ (۹۸:۱۵) او ۹۹].

۳ـ له دې به دروند او سخت بار کوم وي چې يو څوک د يو جاهل، متعصب، مغرور، جګړه مار او مشرک قوم له باورونو او عقيدو سره مخامخ شي، او هغه قبيلې چې له قتل، وژنو او لوټمار سره روږدی شوي دي او د ژوند لار يې ګرځېدلې، د هغوی د ورورولۍ، برابرۍ، او د توحيد د چورليز په چاپېريال د هغوی د راپورته کولو لپاره هڅه او تلاش وکړي؟ د «وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ» مفهوم کولی شو له هغه نقش څخه چې پيغمبر د خلکو په وړاندې درلود ومومو: «الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الرَّسُولَ النَّبِيَّ الْأُمِّيَّ.... وَيَضَعُ عَنْهُمْ إِصْرَهُمْ وَالْأَغْلَالَ الَّتِي كَانَتْ عَلَيْهِمْ.....»[اعرا ف (۱۵۷:۷)].

البته هغه پيغمبر چې د الله د مخلوق تر ټولو سپيڅلی او پارسا وو او هيڅ، وزر يا پېټی او وبال يا ګناه يې نه درلودل، خو د رسالت درونډ بار او د «وزر» نسبې والي ته په پاملرنه، په ځانګړې توګه هغه انتظارونه او هيلې چې پالونکې رب د خپل مخلوق له غوره ترين څخه درلودل، د «وَوَضَعْنَا عَنْكَ وِزْرَكَ الَّذِي أَنْقَضَ ظَهْرَكَ» معنا په بهتره توګه پوهېدل کېږي.

۴ـ د هر مهم او سخت کار تر ټولو ستونزمن پړاو، اراده کول او د سختيو مقابلې او ډګر ته تلل دي. دادی په شرک وهلې ټولنه کې د پيغمبر له لوري توحيد ته د دعوت او بلنې له يو کال تېريدو وروسته، له ټولو ستونزو او خنډونو سره سره د مکې په ښار کې يې د پيغام خپرېدل او مطرح کېدل، او له پيغامه يې د خلکو خبريدل او مطلع کېدل، ډېر ستر توفيق دی چې دا ډول ذکري ترفيع او لوړتيا له الهي توفيق پرته کېدونې نه ده. دا څرګنده ده چې د اسلام مکرّم پيغمبر په داسې مقام او پوړۍ کې وو چې نوم او شهرت ته يې اړتيا نه درلوده، د پيغمبر «ذکر» هماغه حقيقتونه وو چې د مخکينيو رسالتونو په پرله پسې توب پر هغه نازل شوي ول، لکه څنګه چې يې و فرمايل:«...هَذَا ذِكْرُ مَنْ مَعِيَ وَذِكْرُ مَنْ قَبْلِي....»[انبياء ۲۴ (۲۴:۲۱)].

مشرکينو هم د پيغمبر په سپکاوي د ملنډو په توګه ورته ويل: ای هغه څوک چې «ذکر» پرې نازل شوی، ته لېونی يې «وَقَالُوا يَا أَيُّهَا الَّذِي نُزِّلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ إِنَّكَ لَمَجْنُونٌ» [حجر۶ (۱۵:۶)]، او هم په قرآن کې راغلي دي:« موږ يې ذکر هغوی ته ورکړی دی او هغوی يې له ذکره مخ اړوونکي دي»«وَمَنْ فِيهِنَّ بَلْ أَتَيْنَاهُمْ بِذِكْرِهِمْ فَهُمْ عَنْ ذِكْرِهِمْ مُعْرِضُونَ» [مؤمنون ۷۱ (۲۳:۷۱)].

ددې آيت د نزول کال ته په پاملرنه [د بعثت د دويم کال پيل]، د دغه پيغام خپرېدل او د نوم اوچتېدل بايد په نسبي توګه او د هغه مهال د شرايطو په اړه وګڼو سره ددې چې د ذکر رفع او اوچتېدل [وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ]، وروسته په بشپړه او کامله توګه د هاغه مکتب له خپرېدو سره چې راوړی يې وو، او دهغه نوم او ياد او سنتو په تل پاتې توګه رښتينوالی ومومند. په داسې ډول چې وسمهال د هيڅ ياد او نوم آوازه د هغه د نوم په څېر اوچته او لوړه نه ده. دا «د ذکر رفع» په اصل کې د هماغه « درجې د رفع» اغيز او پايله ده چې د پيغمبر د علم او ايمان له ترفيع حاصل شو: «... يَرْفَعِ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا مِنْكُمْ وَالَّذِينَ أُوتُوا الْعِلْمَ دَرَجَاتٍ ...» [مجادله ۱۱ (۵۸:۱۱)] او «... نَرْفَعُ دَرَجَاتٍ مَنْ نَشَاءُ وَفَوْقَ كُلِّ ذِي عِلْمٍ عَلِيمٌ»[يوسف ۷۶ (۱۲:۷۶)].

په لنډه توګه او د تمثيل په مقام کې، غرګرځی چې د غره څوکې ته د ختو په هڅه کې دی، د سينې پراخوالي ته اړتيا لري، چې د نفس تنګي يې د لوړو له سر کولو د هغه مخنيوی ونکړي، سپک پېټی چې ملا يې کړوپه نه کړي او په پای کې د څوکې په سرکولو چې له لوړو آسمان ته وګوري.

پورتنۍ درې ګونې غوښتنې چې د هر هڅاند لپاره د سختيو او له ځواکه پورته هڅو کې رښتينې دي، په ځانګړې توګه د الهي پيغمبرانو لپاره، چې ستونزمن ترين مسئوليت او د تکليف تر ټولو دروند پېټی يې په اوږو وو ، ډېر زيات رېښتينې دی.

---

فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴿۵﴾

نو [پوه شه چې] په رښتيني توګه له [هرې] سختۍ سره اساني شته. (۵)

إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا﴿۶﴾

په رښتيني توګه له [هرې] سختۍ سره اساني شته.

---

اوس نو کومه نتيجه چې لاسته راوړې څه ده؟ له دې بيان وروسته چې: أَلَمْ نَشْرَحْ لَكَ صَدْرَكَ. وَوَضَعْنَا عَنكَ وِزْرَكَ. الَّذِي أَنقَضَ ظَهْرَكَ. وَرَفَعْنَا لَكَ ذِكْرَكَ.، چې په واقعيت کې د لومړني آيت شرحه ده، اوس وايي نو ته هم درې کاره وکړه. دلته درې حقيقتونه بيانوي: لومړی، فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. «فَـ» يعنې نو، په پايله کې، دا نتيجه اخلو، «إِنَّ» د تأکيد لپاره راغلی، يعنې

حتماً و قطعاً. «عُسر» او «عسرت» يعني سختي. «يُسر» هم يعني آساني. ډېريو داسې ژباړلې چې هرې سختۍ پسې آساني ده. خو پاملرنه وکړئ چې نه وايي سختۍ «پسې» بلکې وايي له سختۍ سره «مل» او پخپله له سختۍ سره. تاسو چې درس واياست او کوم زحمت چې کاږئ، هغه سونزې او سختي له ځانه سره يوه آساني ستاسو په وجود کې رامنځته کوي. يعنې د سختۍ په زغملو مو يو څيز هم زده کړی دی. د شتو لاسته راوړل يا د پوهې او علم زده کړه، د هغو له سختيو، له خپله ځانه سره مل آساني هم لري چې هغه په خپل وجود کې احساسوئ.

سړی چې ورزش کوي، د ببلګې په توګه درووند وزن چې پورته کوي، دا سمه ده چې په پيل کې سخته ده، خو د هماغه ورزش او د سختيو له تحمل سره غړي ځواکمن کېږي او په پايله کې د غړو کاري ځواک زياتوي او کارول يې آسانوي دا هماغه راحت د سختۍ پر مهال دی. يعني سختي او آساني يو له بل سره او يو تر بله مله دي. د شاعر په وينا:

بې زحمته راحت نشته زما وروره  که عزت غواړې زحمت درلره بويه

يا دا چې :

نابرده رنج گنج ميسر نمی‌شود  مزد آن گرفت جان برادر که کار کرد

ګنج او رنج هر دواړه پر يو مهال زموږ په وجود کې څرګندېږي. نو، وايي له ستونزو او سختيو چې نن ورسره مخامخ يې مه خوابدی کېږه چې دا له ځانه سره مل آساني او راحت لري. چون موږ عادت لرو دا دواړه له يو بله بېل ووينو، ګومان کوو چې سختۍ کله تېرې شي ورپسې به راحت او سوکالي راشي، خو داسې نه ده، ورپسې نه ده، يو له بله مل دي: فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. له هرې سختۍ سره مل آساني ده.

د «آسانۍ» په اړه هم لازمه ده يوه توضيح ورکړو چې مطلب دا نه دی چې حتماً مادي راحت او سوکالۍ ته رسيږې او شتمني لاسته راوړې. بلکې د هرې سختۍ په زغملو يو مثبت امتياز اخلې. هره سختي او ستونزه ستا دننه يوه مثبته اغيزه څرګندوي. دادی چې بيا هم تکراوي إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. بې له شکه له هرې سختۍ سره آساني ده. دوه ځله يې تکرار کړی چې ووايي په دې باور وکړه. دا ستونزې درد او رنځ دې خوابدی او نهيلی نه کړي، ځکه چې په ترتيب له هغوی مثبته پايله لاسته راوړې. دغه امتياز او مثبته نتيجه حتماً هغه ثواب نه دی چې د

قيامت په ورځ به درته درکول کيږي، په همدې جهان او زمان کې به هم ستونزې او سختۍ ستا په وجود کې راحتي او سوکالي راښرګند کړي.

په حقيقت کې [په دې آيت کې يو اصل او فلسفې ته اشاره کوي چې] زمونږ کارونه د قانون او سنتو پر بنسټ دي. هغه قانون کوم دی؟ فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا. او بيا د تأکيد او ټينګار په توګه تکراروي «فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا». نو خامخا له سختۍ سره آساني ده، خامخا له سختۍ سره آساني ده؛ البته چې قانون همدا دی.

د سجده په سورت کې راغلي چې : وَجَعَلْنَا مِنْهُمْ أَئِمَّةً يَهْدُونَ بِأَمْرِنَا لَمَّا صَبَرُوا وَكَانُوا بِآيَاتِنَا يُوقِنُونَ.(۲۶) [سجده (۲۴)] او د دوی له منځه مو امامان [او لارښوونکي] وګومارل چې خلکو ته زمونږ په امر لارښوونه وکړي دا ځکه چې [په سختيو کې] صبر يې وکړ او زمونږ په آيتونو يې يقين راوړ. [يعنې] ايمان او عمل له سختيو سره مل.

همدغه مضمون، د آل عمران سورت په آياتونو کې هم شته:

وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ فَمَا وَهَنُوا لِمَا أَصَابَهُمْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَمَا ضَعُفُوا وَمَا اسْتَكَانُوا وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ. وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِي أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ. فَآتَاهُمُ اللَّهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْآخِرَةِ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ. (۲۷) [آل عمران (۱۴۶)] او څه ډېر له پېغمبرانو داسې ول، چې په ملاتړ کې يې ډېرى خداى پالونکي [موحّدين] وجنګېدل. او د الله په لار کې چې کړاوونه ورورسېدل؛ نو زړه ماتي او کمزوري نه شول [او د دښمن په وړاندې يې ابلېدو ته غاړه کېنښوولې] او الله صابران [مقاومت کوونکي او زغمونکي] خوښوي .او د هغوی وينا له دې پرته بله نه وه چې ويې ويل: پالونکيه ربه! ګناهونه [عوارض او اغېزې يې] او په چارو کې تېروتنې مو وبوښه،[ د دښمن د يرغل په مقابل کې] ګامونه مو ثابت [او ټينګ] کړه [چې و نه لړزېږو او ډار نه شو] او پر کافرانو بريا را. نو ځکه [ددوی د داسې ليد پر بنسټ] الله ورته د دنيا برخه او د آخرت غوره بدله ورکړه او الله نېکان خوښوي.

دا الهي قانون دی چې له سختۍ سره آساني مل ده او له سختۍ پرته د آسانۍ او هوساينې هيله درلودل له دغه الهي سنتو او قانون سره نه سميږي يعنې که سختي دي وکاږله ډاډه اوسه چې ورسره ورسره دې آساني لاسته راوړې ده.

۵ ـ دادی اوس هغه پیغمبر چې د راز راز پېتو او ښکاره لطفونو څخه برخمن شوی دی او د یتیمۍ او فقر ترخه تجربه او د رحمت او نعمت خوږوالی یې څکلی دی، کولی شي « له سختۍ سره د اسانۍ» د اصل ژوره معنا وپېژني او نورو ته یې ابلاغ کړي «فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا». له سختۍ سره د آسانۍ ملتیا لکه په لار وهلو کې د کېنې پښې ملتیا له ښۍ پښې سره ده چې یو تر بله لازم او ملزوم دي. وزن اوچتوونکی هم د هاغه وزن په سختۍ کې چې اوچتوي یې، د خپلو غړو او عضلو په ځواک او ملاتړ په هماغه حرکت کې آسانۍ ته رسیږي. زموږ روح او اروا هم له سختیو سره په جګړه او مقابله کې او د هغه سره پل په پل آسانۍ ته له نورو سختیو په هرکلي کې رسیږي.

---

## فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ﴿۷﴾

## نو هر مهال چې [دسخت کار له سرته رسولو ] فارغ شې، نو خپل ځان [د بل مأموریت لپاره] چمتو کړه[۶]

---

له دې وروسته دویم فرمان او دنده چې حضرت رسول ته ورکول کېږي ډېره عجیبه ده. اوس چې فارغ شوې او بار دې له اوږو کوز شو نو څه وکړه؟ اوس لاړ شه دمه شه راحت ویده شه؟ خو دا راحت بېډېدل د بدبختۍ پیل دی، نو دا استراحت باید ډېر اوږد او د تنبلۍ تر بریده نه وي. له لږ تم او لږې دمې، او ساه اخېستو وروسته بیا هم هڅه، بیا هم مخ په وړاندې مخ په لوړه تګ دی وقفه مه اوږدوه ځان چمتو کړه.

نو بل کار چې د پیغمبر په ذمه دی یا دویم حقیقت دا دی چې: فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ.
نو، هر مهال دې چې له هرې سختۍ او مسئولیت او مأموریت فراغت حاصل کړ، بیا ځلې فانصب. بیا ځلې هڅه وکړه او ستونزې ځانته هوارې کړه. «نصب» یعنې مخامخ کېدل. لکه د تابلو په څېر چې په یو ځای یې نصب کوي، سینه ډال کول او د نورو دندو منلو ته چمتو کېدل. «فراغت» هم یعنې راحت او هوسا کېدل.

کله چې د زده کړې یو پړاو څوک پشپړ کړي، وایي فارغ شو. د امیدوارو مېرمنو په اړه چې حمل زېږوي وایي فارغه شوې. یعنې درون‌د پېټی یې پر ځمکه کېښود او راحت شوه، دمه شوه او په آرامه یې ساه واخېسته. د انسان ژوند سر تر پایه همدا دی. ټول یې د مسئولیت د پېټي اوچتول او فارغېدل او بیا ځلې هماغه بار اوچتول دي. هر ځل مو چې یوه ستونزه حل کړه باید یوې بلې ستونزې ته منتظر اوسو.همدا دی چې وایي د بلې ستونزې هرکلي ته ورشه.

د انسان طبیعت دا راز دی چې کله یوه سختي تېره کړي او راحت ته ورسيد، غواړي د یو مهال لپاره خپله ستړيا لېرې کړي. له بریالیتوب وروسته تل داسې دي. اوس پرېږده یو څو ورځې راحت او آسوده اوسو، خوښي وکړو. دې احساس ته له برې وروسته د حاصل ټولول وايي. له هر بریالیتوب او لاسته راوړني وروسته، ته به وايي سړی لغړ شي او بارشوي اضافه څيزونه ترې لېرې شي، راحت او هوساینې ته تمايل پیدا کوي. بشر دا ډول دی. د سختۍ د دوران له تېرولو وروسته، چون غواړي له تازه او نوي پوړ او موقعیت څخه برخمن شي په غرور او ځان غوښتنه اخته کېږي. د ځواک او واک غوښتنه کوي. خو حضرت رسول ته د فانصب فرمان ورکول کېږي چې هیڅ کار تمام شوی مه فرضوه؛ مه يې قطع کوه. د بېلګې په توګه که د ښوونځي دوران دې پای ته رسولی وي، ډېر ښه، اوس له دوه درې میاشتو دمې وروسته، ځان پوهنتون ته چمتو کړه. لیسانس دې چې واخیست، سخته دوره وه، سختې ازمویني دې ورکړې، اوس دمه کوې، په راحت ساه وکاږه، خو بیا هم له یو میاشت دوه میاشتو ستړیا لېرې کولو وروسته، خپل ځان د نورو زیاتو هڅو لپاره نصب کړه او د ورپسې ستونزو هرکلي ته ورشه او په همدې نا همواره لار دې یون ته ادامه ورکړه. ګام په ګام او پړاو په پړاو مخکې لاړشه. لاړشه تر لیسانس پورته د فوق لیسانس لپاره. علم خو پای ته نه رسیږي. لاړشه د دوکتورا درجې لپاره او حتا تر هغې پورته د فوق دوکتورا لپاره. مسئله داده چې موږ ته نه ښايي ژوند له خپل محدود او جوت چوکاټ له لیده ووینو. نه ښايي ژوند په لنډمهالۍ کې ووینو.زموږ په وړاندې ډېره بې پایه راتلونکې پرته ده. ابدیت دی، تل پاتېتوب دی. حضرت علی فرمايي: آهِ مِنْ قِلَّةِ الزّادِ وای پر ما! زما د توښې له لږوالي! «زاد» یعنې د لارې توښه آهِ مِنْ قِلَّةِ الزّادِ وَ طُولِ الطَّرِيق وَ بُعْدِ السَّفَرِ وَ عَظِيمِ الْمَوْرِد. (۲۸) آه له دې چې تل پاتې او د ابدیت سفر په مخکې دی او زاد او توښه مې لږه ده. یومهال سړی غواړي مثلاً دوه سوه فرسخه لاړ شي، چې کېدی شي له څو ساعته سفر وروسته موخې ته ورسیږي ځان سره په موټر کې څو بوتله اوبه او یوه اندازه غذا اخلي دا يې د لارې لپاره ټوله توښه ده؛ خو یو مهال ابدي او تلپاتې سفر په مخکې لري، هغه مهال ووینئ چې د لارې لپاره څه زاد او توښه باید برابره کړي! آهِ مِنْ قِلَّةِ الزّادِ وَ طُولِ الطَّرِيق دا اوږده لار. وَ بُعْدِ السَّفَرِ او د سفر او منزل لېرې والی. وَ عَظِيمِ الْمَوْرِد. او د هاغه ځای چې هلته باید لاړشي سختي او عظمت.

دا باید له پامه ونه غورځوو چې معمولاً زموږ د سفر موخه ټاکلې او ځرګنده وي. مثلاً یوښار دی خو کله چې مقصد ابدیت دی؛ یعنې تر بې نهایته او بې پایانه مودې پورې پکې اوسېدل

دي. نو چې دا ډول اوږد ژوند دی. نو د هغه لپاره د هغه په تناسب باید کار وشي او د لارې توښه واخیستل شي. نو پر دې بنا، وایي چې هیڅ مهال مه راضي کیږه؛ هیڅکله مه تم کیږه. قرآن په یو بل آیت کې وایي وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا. هغه کسان هغه څه چې باید وکړي کوي او هغه څه چې دنده یې ده سرته رسوي وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ له دې حال سره سره یې زړه وېرېدونکی او ناآرام دی. ولې؟ ځکه چې: أَنَّهُمْ إِلَى رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ.(۲۹) [مؤمنون ۶۰] ددې لپاره چې د خپل خالق په لور ځي. د داسې یو لوی او ستر ذات، مېلمانه دي. هڅکله له خپل مختصر او ناڅیزه کار څخه نه راضي کیږي. موږ له ځان سره فکر کوو چې مګر الله له موږ څه غواړي؟ نمونځ غواړي هغه خو کوو، روژه هم نیسو، الله نور له موږ څه انتظار لري؟ دېرې دا ډول فکر کوي. ځکه چې له خپله ځانه راضي دي. تم کیږي؛ نوره انګېزه او هڅونه نه لري؛ نور څه نه لري چې هڅې او کوښښ ته یې ولمسوي. بیا هم د حضرت علي له تعبیرونو دی چې: أَنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يُصْبِحُ وَ لَا يُمْسِي إِلَّا وَ نَفْسُهُ ظَنُونٌ عِنْدَهُ، واقعي مؤمن هغه څوک دی چې تل په خپل نفس شک لري. یعني هیڅ وخت له خپله ځانه راضي نه دی. هغه د چا خبره د مننې کارت ځانته نه لیږي. له خپله ځانه متشکر نه دی فَلَا يَزَالُ زَارِياً عَلَيْهَا وَ مُسْتَزِيداً لَهَا (۳۰) تل په خپل ځان انتقاد لري او له پخوا دېر له ځانه غواړي. د «متقین» په خطبه کې هم، چې د نهج البلاغه له مشهورو خطبو څخه ده، دې مضمون ته ورته راغلي دي. د نهج البلاغه په څو ځایه کې راغلي چې وایي متقي پرله پسې په «وَجَل» کې دی؛ یعني ناآرام، ډارن او په تشویش کې دی؛ خو نه داچې خوابدی، ناراحت او شاکي وي په هغه معنا چې خلک ترې پوهیږي، بلکې هیڅ وخت په خپلو نېکو او سمو کړنو بسنه نه کوي؛ خپل ښه کارونه کافي نه ګڼي. نه وایي چې نور بس دی! تر دې ځایه هم چې رسېدلی یم په اصطلاح شق القمر مې کړی یا په اصطلاح توره مې کړې. بلکه سم د هاغه زده کوونکي په څېر چې دوکتورا واخلي او راضي نه شي؛ نه وایي اوس چې دا آخري او اوچت سند مې واخیست نور بس دی. اوس به نور نو له دې وروسته وخورو او وځښو او خوبونه وکړو. نه، هاغه چې د علم په لار کې پل ایښی او علم هم کوم حد او برید نه لري. هغه علم ته وږی تږی دی؛ پر دې بنا هیڅکله له خپله ځانه رضایت نه لري. دلته هم همدا وایي. یو پړاو دې عملي کړ او پای ته دې ورساوه، ډېر ښه. فَإِذَا فَرَغْتَ له دې کاره فارغ شوې، خو: فَانصَبْ. اوس نو خپل ځان بل پروګرام ته چمتو کړه.

۶ ـ «فَانصَبْ» د «نَصْب» له ريښې [کړاو ورکول او کړاو ليدل]، د افعال په باب کې، د مطلوب مقصد لپاره د سختيو جګړې ته تلل او کړاو او زحمت ايستل ، په ټيکاو او ثبات لکه د غره په څېر دي. د غاشيه په سورت کې هم د نصب کلمه په همدې معنا راغلې ده:«أَفَلَا يَنْظُرُونَ.... وَإِلَى الْجِبَالِ كَيْفَ نُصِبَتْ» [غاشيه ۱۹ (۱۹:۸۸)]. د هر وګړي «نصيب» هم هغه سهم او برخه ده چې معمولاً د هغه د خپل کړاو او زيار يا نژدې خپلوانو څخه حاصليږي[لکه د کار مزد يا د ارث برخه].

---

## وَإِلَى رَبِّكَ فَارْغَبْ﴿۸﴾

## او يوازې د خپل پالونکي رب لوري ته څوبمن [اوليوال] شه. (۷)

---

مؤمن کوم ځای او لور ته مخه لري؟ وَإِلَى رَبِّكَ فَارْغَبْ. «رغبت» يعني غوښتنه او لېوالتيا. واقعي زده کوونکی له علم څخه نه ستړی کېږي او نه زړه وهلی کېږي. پر علم عاشق دی او تل د هغه پر لور آهنګ او يون لري. واقعاً موږ وينو چې ځينې مثلاً لس کاله په يو وړوکي لابراتوار کې، له ګهيځه تر شپې، د يوه کوچني تحقيق او څېړنې لپاره، عمر مصرفوي چون غواړي علم ته ورسيږي. په علم عاشق دی. په ژوندانه کې يې رغبت او لېوالتيا له علم پرته نور څه نه دي هيڅ څيز نه غواړي. ټول ژوند يې همدا دی حتی کله چې يو ځای او برياليتوب ته هم ورسيږي بيا هم نه راضي کېږي. ځينې له دوی، وروسته له دې چې په يوه څانګه کې د دوکتورا سند اخلي بيا هم علمي تحقيق ته ادامه ورکوي . مؤمن هم همدا ډول دی. هغه د کوم هدف په لور مخه کوي؟ وَإِلَى رَبِّكَ فَارْغَبْ. د بې نهايت په لور. د خپل پالونکي رب په لور. «اِلی» يعني په لور. د مؤمن رغبت او انګيزه او لېوالتيا د الله په لور ده. موږ ټول د «اِلَی الله» مسافر يو: إِنَّا لِلّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعونَ.(۳۱) [بقره ۱۵۶] ټول له الله راغلي يو او دهغه په لور بېرته ستنيږو.نو دا درې پيغامونه د دريو برياليتوبونو په ياد راوړل دي چې پيغمبر په هماغه موده لږوډېر يو کال کې درلودلي دي. له دې يادونه چې خپل مقصود ته په رسېدلو او د خپل پيغام په رسولو کې مخکې تللی او بريالی شوی دی. اوس وايي نو چې بريالی شوی يې، بيا پيل کړه: دويم پاټکی، دريم پاټکی او همدا راز تر پايه او له دې پوړۍ همداسې پورته لاړشه او دا لړۍ مه پرېږده.

لکه څنګه چې مخکې مو په ځلونو ويلي، موږ هم کولی شو خپل تېر ژوند ته پام وکړو او د خپل ژوند کارن پاڼې، پاڼه پاڼه کړو او د الله لطف چې په ځلونو زموږ په حال شوی دی خپل

ځان ته را په یاد کړو. بنا پردې، اوس چې هره ستونزه او سختي، په هره بڼه او هر ډول رامخې ته شوې وي، نا امیده او نهیلي نه شو چې وکولی شو هم خپل ځان او هم نورو ته، په هره ستونزه کې مرسته وکړو. او دویم، د ټولنیز رسالت په یاد راوړل دي چې دټولنې په اړه مو که هر ډول مثبت کار پیل کړی دی که ټولنیز، فرهنګي یا دیني کار مو پیل کړی، نو هر څوک دې په خپله محدوده کې، په هغه کې نهیلی، ستړی او تم نه شي؛ فکر مه کوئ چې اوس تر همدې ځایه مو چې بېوزلو سره مرسته کړې ده کافي ده؛ نه. ادامه ورکړئ، چون د الله لپاره کار «حَدّ يَقِف» نه لري. په دې لار کې چې هر څومره مخ په وړاندې لاړشئ، لاره پراخه او لا پراخېږي، چون تل باید د پالونکي رب په لور رغبت وشي او هر ځل د هغه په لار کې د لا زیاتې او ځواکمنې انګېزې سره پر مخ لاړشې
صدق الله العليّ العظيم.

---

۷ ـ اوس چې داسې ده، نو د هر مسئولیت له پای ته رسولو او فراغت او له لړی دمې او ساه اخېستلو وروسته، باید نور هسک د لوړې پر لور او د پورته تګ د ادامې او غځولو تکل او ویلاړ وکړې او د لا درندو مسئولیتونو هرکلي ته لاړشې او یو ګام مخکې کېږدې [فَإِذَا فَرَغْتَ فَانْصَبْ ]. خو چرته او له کومې هڅونې او انګېزې سره؟ د هغه چا لپاره چې د پالونکي رب بې نهایته لوړ والی یې پېژندلی، په دا ډول لوړ او هسک ته د پورته کېدو هیله او رغبت، داسې کښېنې او کوښښ هڅوي چې هر پل او ګام یې بې بریده خوند لري.
وَإِلَى رَبِّكَ فَارْغَبْ.

---

۱) طه (۲۰) / ۲۵ ـ ۲۸
۲) الحجر ( ) / ۱۵
۳) هود ( ) / ۱۲
۴) نحل (۱۶)/۱۲۷
۵) نحل (۱۶)/۱۲۷، نمل (۲۷)/۷۰
۶) نحل (۱۶)/۱۲۷، نمل (۲۷)/۷۰
۷) مریم (۱۹)/۸۴، احقاف (۴۶)/۳۵
۸) یوسف (۱۲)/۱۰۳
۹) کهف (۱۸)/۶ ، شعراء (۲۶)/۳
۱۰) قلم (۶۸)/۴۸ ، انسان (۷۶)/۲۴
۱۱) نساء (۴)/۸۱
۱۲) حجر (۱۵)/۹۸، ۹۹

۱۳) اعراف (۷) / ۱۵۷
۱۴) مجادله ( ۱۱) / ۵۸
۱۵) یوسف ( ۱۲)/۷۶
۱۶) انعام (۶)/ ۱۲۵
۱۷) طه(۲۰) / ۲۵
۱۸) طه(۲۰) / ۲۶
۱۹) طه(۲۰) / ۳۰ و ۳۱
۲۰) طه(۲۰) / ۳۳ و ۳۴
۲۱) انعام(۶) / ۱۲۵
۲۲) نحل (۱۶)/۱۰۶
۲۳) تکویر(۸۱) / ۲۷
۲۴) نحل(۱۶) / ۴۴
۲۵) اعراف(۷) / ۱۱۱
۲۶) سجده (۳۲ )/۲۴
۲۷) آل عمران (۳ )/۱۴۶
۲۸) نهج‌البلاغه ، «کلمات قصار»، کلمه ۷۷
۲۹) مؤمنون(۲۳) / ۶۰
۳۰) نهج‌البلاغه، خطبه ۱۷۶
۳۱) بقره (۲) / ۱۵۶